# يو ځلي بيا ژوندون !!!

« د هغو خلکو د خولې اقرار چي د مرګ تر دروازې رسېدلي او بېرته راغلي دي »

( Near Death Experience )

ليکنه:

فقيه العصر مولانا مفتي محمد تقي عثماني

ژباړه:

نويد احمد

احمدشاهي کتاب خانه

# یو ځلي بیا ژوندون!!!

د هغو خلکو د خولې اقرار چي د مرګ تر دروازې رسېدلي او بېرته راغلي دي

*(Near Death Experiences)*

**د هغه کتاب علمي څېړنه چي په لومړني کال یې ۳۰ لکه ټوکه خرڅ سوي!**

لیکنه:

شیخ الاسلام علامه مفتي محمد تقي عثماني (حفظه الله)

ژباړه: نوید احمد

**احمد شاهي کتب خانه**

د تعلیم الاسلام راډیو د ویب پاڼې له خوا پر لیکه کیږي:
www.taleemulislam-radio.com

## د كتاب پېژندنه

---------------

د کتاب نوم:يو ځلي بيا ژوندون!!!

ليکنه: شيخ الاسلام علامه مفتي محمد تقي عثماني حفظه الله

ژباړه: نويد احمد

تصحيح کونکی: قاري مطيع الله ذهين

د چاپ کال: قمري، ۱۴۳۳، جماد الثاني\ ۱۳۹۱، ثور

د چاپ شمېر:

د ژباړن سره اړيکي: ۰۷۰۳۶۱۲۱۰۰

برېښناليک: naveed.ahmad.afg@gmail.com

ناشر: احمد شاهي کتب خانه، ۰۷۰۰۳۲۱۴۷۹

# لړليک


۱: سريزه.............................................7

۲: تر مړيني وروسته څه کيږي؟...........................10

۳: د ډاکټر ريمنډ اې مودي کتاب..........................12

۴: د مړه کېدونکو کسانو حيرانونکي تاثرات...........13

۵: ډاکټر ميلون مورس او د ماشومانو مشاهدات.......۲6

۶: د پالسټر جارج ګېلپ سروې..........................۲8

۷: د دغو مشاهداتو حقيقت څه دئ؟......................۲9

۸: په قرانکريم کي د "توفی" لفظ......................34

۹: د جسم او روح تعلق.................................۳5

۱۰: خوب، بې هوښي او سکته..........................۳۶

۱۱: څو اړيني خبري....................................۳۹

۱۲: يوه استفتاء (شرعي پوښتنه).......................۴۲

۱۳: د دارالعلوم کراچي د دارالافتاء جواب.............۴۴

## د ژباړن له خوا خصوصي يادونه

د ټولو ويونکو څخه په درنښت هيله کوم چي دا کوچنی کتاب د خپلي ځانګړي حيرانونکي موضوع له کبله په تنهايي کي مطالعه کړي تر څو د کتاب د مقصد څخه پوره پوره برخمن سي.مننه،

نويد احمد

## تقريظ

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده و نصلي على رسوله الكريم، اما بعد :

درنو لوستونکو! ستاسو په لاس کي رساله د نړۍ د وتلي عالم، شيخ الاسلام محمد تقي عثماني تحقيق او ليکنه ده. دداسي عالم د تحقيق پر ستاينه خو زه بيخي څه ويلای نه سم...ښه والی يې لکه لمر داسي حقيقت دئ خو دومره به ووايم، چي نويد احمد صاحب ډېره ښه ژباړلې ده الله ﷻ دي مؤلف او ژباړونکي دواړو ته اجر عظيم ورکړي. آمين

العبد الافقر

مولوي عبدالهادي حماد

د اشرفي مدرسې ناظم
کندهار افغانستان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

## سريزه

شيخ الاسلام، فقيه العصر مولانا مفتي محمد تقي عثماني (**مد ظله**) د اسلام نړۍ هغه ممتاز علمي شخصيت دئ، چي د نوموړي د عربي، اردو او انګرېزي څېړنيزو ليکنو او بيانونو څخه الحمدلله د اسلامي نړۍ يوه ډېره لويه برخه اوبه کيږي.

علامه مفتي محمد تقي عثماني صاحب د مشهور عالم مفسر القران مولانا مفتي محمد شفيع رحمة الله عليه (چي د ديوبند نړۍ والي مدرسې مخکنی مفتي هم و) زوی دئ او د هندوستان هيواد د ديوبند په کلي کي زېږېدلی دئ. نوموړی اوس د خپل ستر علمي استعداد، فقهي بصيرت او ديني پوهي له مخي نړۍ وال شهرت پيدا کړئ دئ. نوموړی د بخاري شريف د تدريس تر څنګ د ډېرو په زړه پورو علمي، څېړنزو او اصلاحي تاليفاتو په وسيله پر اسلامي نړۍ ډېري اغېزې ښندلي دي[1]. ددې تر څنګ دده په مشوره مشهور تفسير **معارف القران** په انګريزي ژبه وژباړل سو. زيات کتابونه يې ليکلي دي، چي يو د سترو علمي خدمتونو څخه يې د علامه شبير احمد عثماني رحمة الله عليه د مسلم شريف د شرحي پوره کول وه، چي د **تکلمة الفتح الملهم** په نامه ياديږي. د مسلم شريف دا

[1]: د يوې سروې له مخي مفتي محمد تقي عثماني صاحب د نړۍ د هغو مسلمانانو د جملې څخه ګڼل سوئ دئ چي پر اسلامي نړۍ يې د خپل ستر علمي استعداد له مخي ډيري اغېزې ښندلي دي. (ژباړن)

شرحه د نړۍ مشهورو عربي او عجمي علماء کرامو د اوس وخت ډېره معتبره شرحه بللې ده.

د شام او عربي نړۍ مشهور عالم علامه شیخ عبدالفتاح ابوغده رحمة الله علیه د دې شرحي په اړه فرمايي: ...پر همدې اساس زموږ د شیخ علامه مفتي اعظم مولانا محمد شفیع رحمة الله علیه ذهین او ذکي زوی، محدث جلیل ، ماهر فقیه او ادیب شیخ محمد تقي عثماني په خپل کوښښ سره د **فتح الملهم** شرح مسلم تکمیله پوره کړل.

همدارنګه د مصر یو تن مشهور عالم ډاکټر یوسف القرضاوي د **تكلمة الفتح الملهم** په اړه وايي: داسي موقع مساعده سوه، چي زه خپل فاضل ورور علامه شیخ محمد تقي عثماني د نژدې څخه وپېژنم. ما په دوئ کي د فقه صحیح پوهنه وموندل او په فقه کي د نظر، فکر او انستنباط وړتیا او د ترجیح او اختیار قدرت مي پکښي محسوس کړ. نوموړی پر دې خبره حریص دئ، چي په اسلامي هیوادو کي اسلامي شریعت قایم سي او بېله شکه د دوئ دا ځانګړتیاوي په شرح صحیح مسلم- **تكلمة الفتح الملهم** کي ښه روښانه ښکاري. ما په دې شرحه کي د یوه محدث شعور، د یوه فقیه وړتیا، د یوه معلم ذکاوت، د یوه قاضي تدبر او د یوه عالم بصیرت محسوس کړ. ما د صحیح مسلم ډېري مخکنۍ او نوي شرحي لیدلي دي مګر دا شرح په ټولو کي د پاملرني او استفادې وړ ده

او ددې حقداره ده چې د مسلم شريف دا شرح د اوس عصر ستره شرح وبلل سي... دا شرح قانون په وسعت سره بيانوي او همدارنګه پر نوي تحقيقي، فکري، دعوتي او تربيتي بحثونو مشتلمه ده[2]... (ژباړن)

ستاسو په لاس کي رساله هم پر يوه ډېره نادره موضوع د دوئ يو مضمون دئ چي په ١٩٩٦ ميلادي کال کي د روزنامہ جنگ اخبار په ادارتي صفحو کي په درو برخو کي خپور سو. دا موضوع هم ډېره حيرانونکې ده او هم ډېره په زړه پوري ده. ددې مضمون د ساتني لپاره اوس د رسالې په شکل کي خپرېږي. په دې هيله چي د نظر خاوندان به يې قدر کوي.

ددې حيرانونکي مضمون په پای کي د دارالعلوم کراچي مدرسې د دارالافتاء د څانګې يوه فتوا هم شامله ده ځکه، چي په دې فتوا کي ددې مضمون ټول لنډيز په آسانه ډول بيان سوئ دئ. الله تعالي دي د علامه محمد تقي عثماني (حفظه الله) فيوضات تر دې لا هم عام کړي او الله ﷻ دي و ده ته په خپل دربار کي د خير بدله ور کړي.[3]

*والسلام، اشرف برادارن، سلمهم الرحمن- اداره اسلاميات*

[2]: د تکلمة فتح الملهم د تقريظونو څخه،

[3]: د شيخ الاسلام محمد تقي عثماني صاحب ځني ويب پاڼې چي پر مختلفو علمي او څېړنيزو کتابونو، مجلو او مضامينو مشتملي دي: www.albalagh.net, www.maarifulquran.com, www.onlineshariah.net, www.muftitaqiusmani.com

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

# يو ځلي بيا ژوندون

## (۱)

تر مرګ وروسته څه پيښيږي؟ ددې پوښتني قطعي او يقيني جواب يوائې د قرانکريم او متواترو احاديثو څخه معلومېدلای سي. نن هيڅوک د خپلي مشاهدې او ليدني پر بنياد ددې پوښتني جواب نه سي ورکولای، دا ځکه چي هر هغه شخص چي په حقيقت کي تر مرګه پوري رسيږي او ددې نړۍ څخه يې سترګي پټيږي نو هغه دوهم وار دې نړۍ ته نه راځي.

کان را کہ خبر شد          خبرش باز نیامد

مګر ما څو کاله مخکي يو کتاب مطالعه کړئ، چي په هغه کي دداسي خلکو په زړه پوري تجربې او د سترګو ليدلي حالات راټول سوي دي، چي د مرګ تر دهلېزه رسېدلي وه او بېرته دې نړۍ ته راغلي وه! او دغو کسانو په تفصيل سره دا واقعات بيان کړل، چي دوئ مرګ ته په نژدې حالت کي څه وليدل؟

ددې کتاب نوم Life After Life (تر ژوند وروسته ژوند) دئ او دا د يوه امريکايي ډاکټر ريمنډ اې مودي (Raymond A Moodi) ليکنه ده.

ډاکټر مودي په اصل کي د فلسفې پروفيسر (PhD) دئ، بيا نوموړي

د طب (ميډيکل ساينس) په مختلفو څانګو کي کار کړئ دئ، په ځانګړي ډول د روان شناسی (سايکولوژي) او د دارو او درملو د فلسفې سره دده ځانګړی شوق دئ. ډاکټر مودي ته د لومړي ځل لپاره دا پيښه د يوه بل روان شناس ډاکټر جارج ريچي په اړه معلومه سوه ، چي کله هغه د پرلپسې سينه بغل مريضۍ په دوران کي مرګ ته ډېر زيات نژدې سوی و او بيا ډاکټرانو پر هغه مصنوعي تنفس او داسي نوري طبي لاري چاري(Resuscitation) وکارولې چي تر دې وروسته هغه ډاکټر بېرته ژوند ته راوګرځېدئ او جوړ سو. تر جوړېدو وروسته هغه وويل چي کله زه مړ وبلل سوم نو په دې وخت کي ما ډېر عجب حيرانونکي او نابلده منظرې وليدلې. ډاکټر مودي دې پيښو ته ورته په نورو پيښنو هم خبر سو نو دئ په ډېر زيار سره د همدغسي کسانو په لټه کي سو او د هغو سره يې ملاقاتونه پيل کړل، تر داسي اندازې چي ډاکټر مودي تقريباً ۱۵۰ همدغسي مريضان پيدا کړل او د هغو سره يې مرکې وکړې او وروسته يې دغه کتاب وليکی. کله چي دا کتاب نشر سو نو په همغه لومړني کال يې ۳۰ لکه ټوکه خرڅ سول.

ډاکټر مودي تر دې وروسته بيا هم ددې مسئلې په اړه نور ودې څېړني ته ادامه ورکړه او بيا يې پر دې موضوع نور زيات کتابونه وليکل ، چي په هغو کي درې کتابونه ما درې څلور کاله مخکي په امريکا کي رانيول. د هغو کتابونو نومونه دادي:

Life after Life: 1
The Light Beyond: 2
Reflection on Life after Life: 3

او کوم څه چي زه مخته بيانوم هغه ددغو درو کتابونو څخه اخيستل سوي دي. په دې کتابونو کي يو اځي د هغو کسانو حالات بيان سوي دي چي هغوئ د ډېري سختي مريضۍ له کبله مړه يا (Clinically Dead) بلل سوي وه مګر ددغو مريضانو د سخت حالت په خاطر ډاکټرانو د آخري کوښښ په ډول د زړه د مالش او مصنوعي تنفس په استعمالولو سره هغوئ په دې ازمايښت کي کامياب سول او دا مريضان (چي مرګ ته ډېر نژدې سوي وه) بېرته په هوښ کي راغلل.

د ډاکټر مودي په وينا د کومو کسانو سره، چي ده مرکې وکړې هغوئ د بېلابيلو مذهبونو پيروان وه او د مختلفو سيمو اوسېدونکي وه. په دوئ کي هر يوه خپل ليدلی حالت او کيفيت په خپله طريقه بيان کړئ دئ. چا يوه خبره زياته کړې وه او چا بيا يوه خبره کمه بيان کړې وه، مګر په مجموعي ډول هغه مشترکي خبري او حالات چي تقريباً د هر يوه په بيان کي دي د هغو لنډيز په دې ډول دئ:

" يو شخص مرګ ته نژدې دئ، د ده د بدن حالت دا سي اندازې ته رسېږي چي دئ خو خپله خبري اوري چي ډاکټر دده د مړيني اعلان وکړئ (چي

دئ مړ سو)، ناڅاپه دئ يو ږغ اوري ، چي ده ته تکليف ورکوي او ددې سره دئ دا احساسوي چي په ډېره تيزۍ سره په يو ډېر اوږد او تاريک سوپ (تونل) کي روان دئ، تر دې وروسته دغه کس ناڅاپه دا احساسوي چي دئ د خپل بدن څخه جلا سوئ دئ خپل جسم او بدن د ليري څخه خپلهويني او د ليري څخه خپل بدن ته ګوري. دئ دا ډول صحنه ويني ، چي دئ خپله په يو بل ښکاره وتلي ځای کي ولاړ دئ او دده پوره جسد پر چپرکټ (چارپايي) پروت دئ او دده ډاکټر دده په جسد اخته دئ تر څو زړه يې په حرکت راولي او يا په مصنوعي تنفس (ساه) ورکولو مصروف دئ.

تر څه وخت وروسته دئ خپل دحواس پر ځای کولو کوښښ کوي نو دئ داسي احساسوي چي (دئ په يو بل حالت کي دئ)، په دې نوي حالت کي دئ يو بل جسم لري (هغه خپل اصلي جسم خو يې پر چپرکټ پرېښوی خو اوس بيا دئ يو بل ډول جسم لري) مګر هغه جسم او بدن چي ده هلته پرېښوی هغه ددې دوهم جسم څخه ډېر جلا دئ. ددغه نوي جسم کيفيتونه او څرنګوالی هم مختلف دئ او ددې نوي جسم قوتونه او خواص هم بل ډول دي. يو څه وخت وروسته په همدې حالت کي دئ خپل هغه دوستان او شناخته ويني چي مخکي مړه سوي وه او بيا وروسته يو روښانه او نوراني وجود (being of light) دده تر سترګو کيږي ، چي ده

ته خبري کوي او دا ورته وايي چي ته د خپل ژوند حساب او کتاب وګوره. ددغه نوراني وجود دا خبري ماوراءالفاظ (Nonverbal) وي (داسي خبري وي چي په ژبه نه کيږي) او بيا دغه نوراني وجود دده ومخته په ډېره تيزۍ سره دده د ژوند ټولي مهمي پيښي رامخته کوي او په ده يې ويني.

پر ده يوه داسي مرحله رائحي چي په هغه کي يو څه خنډ ويني چي په اړه يې دئ داسي پوهيږي چي دا حالت د دنيوي ژوند او تر مرګ وروسته ژوند تر منځ سرحد دئ. ودې سرحد ته په نژدې رسېدو سره دئ پوهيږي چي زه اوس بېرته دنيا ته ځم، اوس لا زما د مرګ وخت نه دئ راغلی. تر دې وروسته دئ په يوه نابلده او نااشنا طريقه سره خپل هغه اصلي جسم ته رائحي چي ده پر چپرکټ پرايښی و. تر جوړېدو وروسته دئ خپل دغه حالت نورو ته بيانول غواړي مګر لومړی خو ددې حالاتو د بيانولو لپاره ټول انساني الفاظ نيمګړي معلوميږي او دوهم دا چي که چيري دئ دا کيفيات نورو ته بيان هم کړي نو دوئ يې مسخرې او ټوکي بولي نو ځکه دئ چپ پاتيږي."

ډاکټر مودي د ۱۵۰ دغسي کسانو سره د مرکې ددې لنډيز د بيانولو سره دا خبره هم څرګنده کړه چي زما دا مطلب نه دئ ، چي په دغو ۱۵۰ کسانو کي هر يوه ټوله قصه په همدې ترتيب بيان کړې ده بلکي دده په وينا چا

پوره پېښه بيان کړې ده، چا د دې يوه برخه را سره شريکه کړې ده او يو څه يې پرې يښې ده، د چا ترتيب يو ډول و او د چا دا بل ډول بلکې د دې حالاتو د بيانولو لپاره ډېرو کسانو مختلف الفاظ او مختلف تعبيرات او اصطلاحات اختيار کړي دي. او دا خبره تقريباً هر شخص کړې ده چې هر څه چې موږ ليدلي دي (مرګ ته د نږدې کېدو پر وخت) هغه په خوله بيانول زموږ لپاره ډېر زيات مشکل کار دئ.

يوې مېرمنې خپل دغه مشکل په څه فلسفانه ژبه داسي بيان کړئ دئ:

"زه چي کله تاسو ته دغه ټول حالات بيانول غواړم نو زما يو اصلي مشکل دا دئ ، چي څومره الفاظ مـا ته معـلوم دي هـغه ټـول درې ابعـادي (Three Dimensional) دي (د طول، عرض او عمق په تصور کي مقيد دي). ما تر اوسه په هندسه کي دا زده کړي وه چي په دنيا کي يوائي درې ابعاد دي مګر هغه څه چي ما (د مړيني تر اعلان وروسته) وليدل نو د هغه څخه معلومه سوه چي هلته تر درو زيات ابعاد دي نو ځکه دا کيفيت او حالت په صحيح ډول بيانول زما لپاره ډېر ستونزمن دئ ځکه چي زما څخه هغه مشاهدات او د سترګو ليدلي حالات مجبوراً په درو ابعادي الفاظو بيانيږي."

په هر صورت، هغو مختلفو کسانو چي کوم حالات بيان کړي دي په هغو کي ځني د ځانګړي ارزښت او پاملرني وړ دي، لکه :

۱: د يوه تاريک سوپ (تونل) څخه تېرېدل
۲: د خپل اصلي بدن څخه جلا کېدل
۳: مړه سوي ملګري او دوستان ليدل
۴: د يو نوراني وجود سره ليدل
۵: د خپل ژوند تيري سوي پيښني او عملونه ليدل

د هغو ټولو خبرو تفصيل چي بېلابيلو کسانو بيان کړئ دئ د هغه څو اقتباسات او ټوټې ډېر زړه راويښونکي او په زړه پوري معلومېږي:

## د يوه تاريک سوپ څخه تېرېدل

د تور سوپ څخه د تېرېدو تجربه يوه کس داسي تعبير کړې ده، چي زه په يوه توره تياره خلا کي روان وم، چا بيا ويل چي هغه يو ډېره زياته تاريکه وه او چا بيا دا تجربه د تاريک غار په نوم ياده کړې ده. وايي زه په هغه کي لاندي بېول کېدلم، چا بيا د يوه څا په ډول تعبير کړې ده، چا بيا داسي ويلي دي چي هغه يوه توره شېله وه، څوک بيا وايي چي زه په توره تياره کي پورته ولاړم مګر دا يوه خبره ټولو کوله چي دا الفاظ ددغو حالاتو د بيانولو لپاره کافي نه دي.

## د خپل اصلي بدن څخه جلا کېدل

هغه مشاهده چي ټولو کسانو په ډېر حيرت او تعجب سره بيان کړې ده هغه دا ده چي دوئ د خپل جسد څخه جلا سول!

يوه مېرمن چي د زړه د حملې له کبله په روغتون کي داخله وه، وايي چي ناڅاپه مي داسي احساس کړه ، چي زما د زړه حرکت ودرېدئ او زه د خپل بدن څخه جلا کېږم. لومړی زه فرش ته ورسېدم او بيا په کراره کراره زه د مځکي څخه پورته سوم تر داسي اندازې ، چي زه د يوې ټوټې کاغذ په ډول پورته سوم او په چت پوري ومښتم. د همغه ځای څخه ما په ښکاره ډول ليدل چي زما جسد لاندي پر چپرکټ پروت دئ او خپل جسد ته مي کتل چي ډاکټران او نرسان خپل اخري تدبيرونه پر ازمايي.

يوه نرس خو دا لا وويل: "الله! دا خو ختم سوه!" او بل نرس زما د جسم پر خوله باندي خوله ټينګه کړه او د ساه يا تنفس ورکولو کوښښ يې کاوه ما د هغه نرس سټ د شا له خوا ليدئ او ورېښتان يې زما تر اوسه په ياد دي. بيا هغو يو ماشين راوړی ، چي په هغه سره يې زما ځيګر ته تکانونه ورکړل او ما د لوړي څخه خپل بدن ته په حيرت کتل.

د خپل بدن څخه د راوتولو حالت ځني کسانو په داسي ډول بيان کړئ دئ چي موږ د خپل اصلي جسم څخه يوه داسي نوي وجود ته راغلو ، چي هغه جسم نه و ! او د بعضو په وينا چي هغه هم يو بل ډول جسم و چي نورو شيانو ته يې کتلای سوای او کتل يې کول مګر نورو هغه جسم نه سوای

لیدلای. په همدغه حالت کي ځیني کسانو کوښښ کوی چي د دوی په وړاندي ډاکټرانو او نرسانو سره خبري هم وکړي مګر هغوئ د دوئ بږغ نه اوریدئ. او موږ ددې بې وزنۍ په عالم کي نه یوائې په فضا کي ګرځیدولو بلکي که موږ به یو شي ته لاس ور وړی نو زموږ وجود به تر دغه شي ها خواته ووتی. په سلګونو کسانو دا هم وویل چي په دغه حالت کي وخت ساکت سوی و او موږ ته داسي معلومیدل چي موږ د وخت د قید څخه آزاد سوي یو.

## مړه سوي ملګري او دوستان لیدل

په همدې حالت کي ځو کسانو خپل مړه سوي دوستان او شناخته هم لیدلي دي او ځو کسانو لا دا هم وویل چي موږ ډېر زیات کړیدلي او غمګین ارواحونه ولیدل! دغه غمځپلي ارواحونه انساني شکل ته ورته وو! مګر د انساني شکل څخه یو څه مختلف وه. یوه کس ددې مشاهدې تفصیل په دې ډول بیان کړئ:

د هغو سرونه کښتې خوا ته زړیدل! هغوئ ډېر د غمه ډک او پریشانه معلومیدل، هغوئ ټوله یو تربله داسي مښتي ښکاریدل لکه یوه ډله چي په زنځیر تړلې وي. نه مي په یادیږي چي ما د دوي پښې کله هم ولیدلې، ما ته نه رامعلومیدل چي هغوئ څه شي وه، د هغو رنګ اوښتی وو! هغوئ بالکل د خپل حالت څخه وتلي وه او بې هوښه غوندي وه او سپېره

ښکارېدل. داسي معلومېدل چي هغوئ يو د بل سره په خلا کي په مشکل سره شا و خوا ګرځېدل او لکه هغوئ ته چي معلومه نه وي چي چيري ځي. هغوئ به يو ځل يوه طرف ته روان سول، وروسته به چپې خوا ته وګرځېدل، څو قدمه به ولاړل، بيا به رستې خوا ته وګرځېدل او هري خوا ته چي به ولاړل نو هيڅ شی به يې هم نه کوی. داسي معلومېدل چي هغوئ د يو شي په لټه کي دي مګر د څه شي په لټه کي وه؟ ما ته نه ده معلومه... داسي ښکارېدل ګويا دوئ ته په خپله نه ده معلومه چي دوئ څوک دي او څه شي دي؟ د هغو هيڅ پېژندګلوي نه وه...ځني وخت داسي هم معلومېدل چي په هغو کي يو کس يو څه ويل غواړي مګر نه سي يې ويلای." (4)

## د يوه نوراني وجود سره ليدل

ډاکټر مودي چي د څومره خلکو سره مرکې کړي دي په هغو کي اکثرو ددې تجربې په دوران کي دنوراني وجود (Being of light)د ليدولو يادونه خامخا کړې ده. د هغو د خولي بيان دئ چي دغه نوراني وجود ته په کتو سره خو يقيناً دا معلومېده ، چي هغه يو وجود دئ مګر هغه بدن نه

4: (Reflection P:19 )

درلود، هغه سر تر پايه روښنايي وه، په پيل کي به هغه روښنايي لږ معلوميده مګر په تلو تلو کي هغه ډېرېدل البته د خپلي غير معمولي روښنايي سربېره پر هغه سترګي نه بربښېدلې.

ډېرو کسانو ويلي دي، چي هغه روښانه وجود دوئ ته ويل چي: **" تاسو د خپل ژوند محاسبه (حساب او کتاب) وکړئ."** ځينو کسانو د هغه نوري خبري هم نقل کړي دي مګر دا ټول خلک پر دې خبره سره متفق دي، چي کوم څه چي دغه نوراني وجود ويل هغه يي د الفاظو او ږغ په ذريعه نه ويل يعني د هغه هيڅ لفظ دوئ نه اورېدئ بلکي هغه ږغ په يو ډېر جلا حيرانونکي انداز سره و، چي ددې په ذريعه د هغه خبري پخپله زموږ ذهن ته انتقالېدلې.

کومو خلکو چي د بې جسمۍ په دې حالت کي د يوه "نوراني وجود" د ليدولو يادونه کړې ده، په هغو کي اکثرو ويل چي دغه "نوراني وجود" زموږ څخه زموږ د تېر ژوند په اړه څه پوښتني وکړې، د پوښتنو الفاظ مختلفو کسانو مختلفي ښوودلي دي مګر د ټولو مفهوم تقريباً همدا دئ چي دې "نوراني وجود" به پوښتل:

**" ستاسو سره د خپل تېر ژوند په اړه ما ته د ښکاره کولو لپاره څه شي سته؟"**

What do you have to show me
that you have done with your life?

(يعني په تېر ژوند کي مو څه اعمال کړي دي چي ما ته يې راښکاره کړئ؟)

## د خپل ژوند تيري سوي پيښي او عملونه ليدل

بيا د هغو خلکو د خولې اقرار دئ ، چي دغه "نوراني وجود" زموږ د تېر ژوند واقعات يوه په يوه موږ ته راښکاره کول. دغه پيښي او واقعات يې په څه ډول ورښکاره کول؟ د دې تفصيل نور هم په زړه پوري دئ مګر هغه ان شاءالله زه په راتلونکې اونۍ کي بيانوم او د هغه سره د هغو پيښو او واقعاتو په اړه خپله تبصره هم ذکر کوم.

(2)

په تېره اونۍ کي ما د امريکايي ډاکټر رېمنډ ای مودي د کتابونو په حواله د هغو کسانو ځني تجربې او د سترګو ليدلي حالات ذکر کړي وه ، چي د يوې سختي مريضۍ يا حادثې په نتيجه کي د مرګ دروازې ته رسېدلي وه او بېرته راګرځېدلي وه.

په هغو کې ډېرو زياتو کسانو ويل چې د يوه تاريک سوپ (تونل) څخه تر تېرېدلو وروسته دوئ يو ډېر نابلده او حيرانونکی نوراني وجود وليدئ. هغه زموږ څخه زموږ د تېر ژوند په اړه پوښتني وکړې او بيا هغه ځای پر ځای پخپله زموږ د تېر ژوند ټول واقعات او پيښي يو په يو جلا جلا را ښکاره کړې. د مثال په توګه يوه مېرمن خپله دغه مشاهده په دې ډول بيانوي:

"کله چي هغه نوراني وجود ما وليدئ، نو هغه تر هر څه دمخه زما څخه دا پوښتنه وکړه چي ستا سره د خپل ژوند کوم عمل سته چي ما ته يې راښکاره کړې؟ او ددغه پوښتني سره سم ما ته زما د تېر ژوند مناظر ښکاره کېدل شروع سول (ما خپل ټول تېر کارونه او عملونه ليدل) زه ډېره زياته حيرانه سوم چي دا څه حال دئ؟ ځکه ناڅاپه داسي معلومېدل چي زه د خپل ماشومتوب بالکل هغه ابتدايي وخت ته تللې يم او بيا زما د ټول ژوند د هر کال حالات او واقعات پر يوه ځای زما مخته راغلل، ما ليدل چي زه يوه کوچنۍ انجلۍ يم او د خپلي خوني سره نژدې د يوې چينې تر څنګ لوبې او بازی کوم، په دې وخت کي ډېري پيښي چي زما د خور سره سوي وې ما وليدلې. د خپلو ګاونډيانو تېر سوی واقعات مي وليدل، ما خپل ځان په وړکتون (کودکستان) کي وليدئ، ما هغه ناوکۍ وليدل چي زما ډېره خوښه وه، ما هغه ماته کړې وه او تر ډېره مي ژړل، بيا زه دانجونو په اتحاديه کي شامله سوم او د ابتدايي ښوونځۍ

پيښي زما ومخي ته راغلې... په همدې ډول (دا ټول حالات راښکاره کېدل) د منځنۍ ښوونځۍ، عالي لېسې او د فراغت د مرحلو څخه تېرېدم تر داسي اندازې چي زه اوسني وخت ته راورسېدم.

ټولي پيښي په هم هغه ترتيب زما ومخ ته راتلې په کوم ترتيب چي پيښي سوي وې او دا واقعات په ډېر واضح ډول ښکاره کېدل. د هغو شيانو ليدنه بس همدا ډول وه لکه ته چي بهر ته ووځې او د دباندي څخه ورته ګورې. اوس نو دغه واقعات په پوره ډول (Three Dimensional) درې ابعادي وه او هغه هم رنګه وه، په هغو کي حرکت هم وو. د مثال په توګه: کله چي ما د خپلي ناوکۍ د ماتولو منظر ليدئ نو ما ته ددغه عمل ټول حرکتونه په نظر راتلل.

کله چي ما دغو مناظرو ته کتل نو په دغه وخت کي ما هغه نوراني وجود نه سوای ليدلای. هغه وجود به تر دې خبري وروسته ګوښه سو چي تا څه کړي دي؟ پر دې سربېره ما دا احساسول چي هغه نوراني وجود همدلته يو ځای موجود دئ او هم دی دا واقعات راښکاره کوي. داسي نه وه چي هغه ددې معلومات غوښتل چي ما په خپل ژوند کي څه کړي دي؟ هغه مخکي لا په دې خبرو خبر و مګر هغه غوښتل چي دا پيښي ځکه زما مخي ته را وړاندي کړي تر څو هغه زه په ياد ولرم.

دا ټوله قصه ډېره حيرانونکې وه، زه هلته موجوده وم، ما په واقعي ډول دا ټول حالات ليدل او دا ټول مناظر په ډېره تېزۍ سره زما مخې ته راتلل مګر د تېزۍ سره سره هغه دومره کرار خود وه چې ما په صحيح ډول درکولای سوای، بيا هم د وخت دورانيه دومره تېزه نه وه (دا يو عجب حالت وو چې پر ما تېر سو!) زما زړه ته نه لويږي بس داسي معلومېدل چې يوه رڼا راغله او بېرته ولاړه، داسي ښکارېده چې دا ټوله پېښه تر پنځو دقيقو لا هم په لږ وخت کي رامنځ ته سول البته په غالب ګمان تر ۳۰ ثانيو به يې زيات وخت نيولی وي مګر بيا هم زه تاسو ته په صحيح ډول ويلای نه سم."

يو بل کس خپل د سترګو ليدلی حال په داسي ډول بيان کړئ: "کله چې زه ددې اوږده تاريک ځای څخه تېر سوم نو ددې سوپ (تونل) په اخري سر کي زما د ماشومتوب ټول خيالات بلکي زما ټول ژوند ما ته په هغه ځای کي را ښکاره سو چې زما مخې ته بالکل د رڼا په ډول ځلېدئ.
دا حالات هسي د تصوير او انځورونو په ډول نه وو بلکي زما په نظر چې د انسان د خيالاتو سره ورته وه. زه دا کيفيت ستاسو په وړاندي نه سم بيانولای مګر دا خبره پرېکنده ده چې زما د ټول ژوند ثبت (ريکارډ) هلته پروت و! دا ټولي پېښي (چې په ژوند کي پر ما راغلي وې) هلته پر يوه ځای تر سترګو کېدې. زما مطلب دا دئ چې په داسي ډول نه وې چې

په يوه وخت کي يو شي ښکاره کېدئ او په بل وخت کي بل شي بلکي هر شي په يوه وخت کي تر سترګو کېدئ. ما هغه کوچني کوچني او لوی عملونه هم ليدل چي ما کړي وه او په دغه وخت کي زما زړه دا غوښتنه کول چي کاشکي ما دا کارونه نه وای کړي او کاشکي زه بېرته تللی وای او هغه ټول عملونه او کارونه مي منسوخ (undo) کړي وای.([5])"

کومو خلکو چي دا مشاهدات د ډاکټر مودي په وړاندي بيان کړي په هغو کي بعضي کسانو دا هم ويلي دي چي ددې مشاهدې په اخره مرحله کي (چي کله موږ بېرته خپل جسد ته راتلو) دوئ داسي يو شی وليدئ لکه يو بنديش يا مزاحمت چي وي او يا به يو چا ورته ويلي وي يا پخپله به دا خيال د دوئ په زړه کي راغلی وي چي اوس ددې خنډ څخه د تېرېدني وخت لا نه دئ راغلی. او تر دې وروسته سمدستي دغه کسان بېرته خپل جسم ته راغلل او بېرته د دنيا و عادي ژوند ته را وګرځېدل. بعضي خلکو دا وويل چي دا بنديش د اوبو د يو جسم په ډول و، چا بيا ويل چي سپېره رنګه خوپ وه، چا بيا دا د دروازې سره تعبير کړئ، چا بيا ويل چي هغه داسي يو دېوال و لکه پر يوه کښت چي را ګرځول کيږي او يو چا لا دا هم ويل چي هغه صرف يو خط يا کرښه وه.

---

[5]: (Life after Life p-69)

د ډاکټر مودي دا کتاب (Life after Life) لومړی په ۱۹۷۵م کي چاپ سوی و، چي په هغه کي نوموړي ډاکټر په اتو کالو کي تقريباً د ۱۵۰ کسانو د مرکو پايله او نتيجه ذکر کړې وه. ددې تر څنګ هغه دا هم ويلي وه چي تر اوسه پوري زما دغه څېړنه او تحقيق نه په پوره ډول د ثابت سوي ساينسي حقيقت په حيث د قبلولو مستحق دئ او نه دا ډول پيښې د صحيح شمېرولو په حالت کي دي مګر دده دې کتاب ډېر نور ډاکټران ودې موضوع ته متوجه کړل او تر دې وروسته ډېرو خلکو دا ډول مشاهدات خپله موضوع وګرځول او پر دې يې ډېر کتابونه وليکل، چي په هغو کي يو هم د ډاکټر ميلون مورس (Melvin Morse) کتاب دئ چي د (Closer to the Light) په نامه چاپ سوی دئ. نوموړي د ماشومانو د مريضيو متخصص دئ او ده د دې خبري پلټنه شروع کړه، چي ايا ماشومان هم ددې ډول مشاهداتو سره مخ کيږي؟ دده دا خيال و چي بالغ کسان د خپل ذهني تصوراتو څخه په متاثره کېدو سره څه حالات ليدلای سي مګر د ماشومانو ذهنونه عموماً د دې ډول تصوراتو څخه خالي وي نو له دې کبله که په ماشومانو کي هم ددې مشاهداتو ثبوت پيدا سي نو ددغو حيرانونکو حالاتو اصلي حيثيت لا زيات ډېرېدلای سي.

حال دا چي په دې کتاب کي ډاکټر مورس ويلي دي ، چي ډېرو ماشومانو هم دا ډول حالات په سترګو ليدلي دي او ده په خپله د دغو ماشومانو سره کتلي دي او د هغو د خولې حالات يې د مختلفو لارو ازمايلي دي او نتيجه دا راوتلې ده چي دغو ماشومانو درواغ نه دي ويلي بلکي په رښتني ډول هغو دا مناظر او بېرونکي حالات ليدلي دي. دا کتاب په ۲۳٦ صفحو کي د دې ډول بياناتو او د هغو پر ساينسي تجزيو مشتمل دئ.

## يو بل کس پالسټر جارج ګېلپ

(Pollster Gearge Gallop) ګېلپ په ټول امريکا کي د داسي خلکو سروې ترسره کړه چي د دې ډول مشاهداتو سره مخ سوي وي. د هغه د حيرانونکې سروې لنډيز دا و ، چي د ټولي امريکا د ابادۍ تقريباً پنځه

په سلو کي افراد مرګ ته د نژدې کېدو پر وخت د دې ډول مشاهدات سره مخ کيږي.

ډاکټر مودي هم خپله څېړنه جاري وساتل او په خپل دوهم کتاب (The Light Beyond) کي يې ليکلي دي، چې مخکي د ۱۵۰ کسانو سره د مرکې او ليدني وروسته دوئ دا ځل د زرو کسانو سره مرکې وکړې او ددې څېړني نتيجه هم زيات او کم همغه وه البته دا ځل ځينو خلکو نوي خبري هم شريکي کړې مثلاً: مخکي په ۱۵۰ کسانو کي چا په ښکاره ډول د جنت يا دوږخ په څېړ د کوم شي يادونه نه وه کړې مګر ددغه نوي تحقيق په وخت کي څو نفرو "د رڼاګانو د يوه ښايسته ښار" يادونه وکړه، ځينو ډېر ښايسته باغونه ليدلي دي او په خپلو خبرو کي هغوئ دغه ځايونه په جنت نومولي دي. بعضو کسانو په ښکاره ډول د دوږخ د حالاتو بيان هم کړئ دئ، يوه نفر وويل: زه لاندي روان وم، لاندي تاريکه وه، هلته خلکو په ډېر بد ږغ سره چيغي او نارې وهلې! او هلته اور و. هغو خلکو زما څخه د چيښولو د اوبو غوښتنه کول. " پوښتونکي سوال وکړئ چي ايا ته د يوه سوپ (تونل) د لاري لاندي ولاړې؟ هغه جواب ورکړي چي يا! هغه تر سوپ زيات لوی شی و، زه په فضا کي لاندي روان وم. " پوښتنه ځني وسوه چي هلته څومره کسانو چيغي او نارې وهلې؟ ايا هغوئ کالي اغوستي وه او که نه؟ نو هغه په

جواب کي وويل: **هغوئ دومره ډېر وه ، چي چا نه سواى شمېرلاى! زما په خيال تر يو ميليون زيات وو او د هغوئ پر بدن کالي نه وه." (6)**

د هغو ټولو مشاهداتو اصلي حقيقت څه دئ؟ د يو شمېر خلکو دا ګمان دئ ، چي په غربي هيوادونو کي د اسراريته ډک شوق د يو جنون (Craze) تر حده مخ پر ډېرېدو دئ او دا کتابونه د همدې جنون مبارزه کېدلاى سي. که څه هم ددې احتمال څخه په پوره ډول صرف نظر نه سي کېدلاى مګر د ۱۹۷۵ م څخه وروسته ، چي څرنګه مختلفو باسواده حلقو او کړيو دغه واقعات تر نظر لاندي نيولي دي او پر دې بيانونو چي په څه ډول څېړني سوي دي د همدې کبله دا احتمال په ځانګړي ډول وار په وار ليري کيږي. ډاکټر مودي پر دې احتمال هم په ځانګړي ډول تفصيلي بحث کړئ دئ چي د کومو خلکو سره ده مرکې کړي دي هغوئ هم د بې بنياده او بې ګټو خبرو شوقيان خو نه وه مګر اخري نتيجه همدا راوتلې ده چي د دومره زياتو خلکو اقرار چي د مختلفو علاقو او مختلفو عقايدو او افکارو سره تړاو ولري او بيا دي په يوه ډول داسي خبري وکړي دا بيخي د قياس او منطق څخه ليري خبره ده.

---

:[6] (The Light Beyond. P: 26-27)

ځينو ډاکټرانو دا خيال هم ښکاره کړئ دئ چي د ځينو نشيي توکو او درملو د استعمال ځخه هم دا ډول کيفيات پيداکيږي ، چي وروسته انسان خپل ځان د چاپيريال ځخه دباندي محسوسوي او ځيني وختونه دده دماغ د درواغو تصوروراتو ته د ليدني شکل ورکوي نو په همدې

خاطر نومړي ته ځيني وخت فرېب ورکونکي منظرې (Hallucinations) په نظر ورځي، کېداي سي دا کسان د همدې ډول کيفيت سره مخ سوي وي مګر ډاکټر مودي د دواړو ډولو کيفياتو تر جلا جلا تجزيه کولو وروسته همدا رايه ښکاره کړې ده ، چي د کومو خلکو سره ده مرکې او ملاقاتونه کړي دي په ظاهره د هغو مشاهدات د خطايستونکو ليدونو ځخه جلا وې. ډاکټر ميلون مورس پر دې احتمال د لا زياتي ساينسي ځېړني وروسته خپله وروستۍ پرېکړه او فيصله داسي بيان کړې ده ، چي دا مشاهدات کوم چي خلک ورسره مخ سوي دي (Hallucinations) يا خطا ايستونکي نه وه.

نومړي پر دې احتمال هم خبري اتري کړي دي ، چي د هغو خلکو مذهبي تصورات د هغو پر ذهنونو داسي مسلط وه چي د بې هوښۍ يا خوب په عالم کي همغه تصورات د يوه محسوسي پيښي په شکل کي د

هغو مخي ته راتلل. ډاکټر مودي دا احتمال هم ليري وباله، چي د هغه يو سبب دا و چي د کومو خلکو سره ده کتلي دي په هغو کي زيات شمېر خلک داسي هم وه چي د مذهب قائل نه وه يا د مذهب څخه دومره ليري او بې ګانه وه چي پر هغو د مذهبي تصوراتو هيڅ نخښه نه معلومېده.

نو بيا دا مشاهدات څه وه؟ د هغو څخه څه نتيجه راوځي؟ او په دې اړه د قرانکريم او نبوي احاديثو څخه څه معلومېږي؟ پر دې موضوع ان شاء الله راتلونکې اونۍ يو څه رڼا اچوم.

(3)

په تيرو دوو برخو کي ما د هغو کسانو د بيانونو لنډيز ذکر کړئ، چي د مرګ و دروازې ته په رسېدو بېرته دنيا ته راغلي وه (مړه سوي نه وه).

1 : هغو خپل ځان د خپل جسم څخه جلا کړل سوی ولیدئ.
۲: د يوه تاريک سوپ (تونل) څخه تېر سول.
۳: یو نوراني وجود يې وليدئ.
۴: او بيا دې نوراني وجود ده ته د ده د تېر ژوند ټوله نقشه وړاندي کړل.

دا خبره خو واضح ده چي هغو خلکو ته مرګ نه راتلی که مرګ ورته راغلی وای نو بیا دوهم ځل دنیا ته نه سوای راګرځېدلای. خپله ډاکټر مودي چي ددغو خلکو بیانونه يې قلمبندي کړي وه دا وايي چي دغو خلکو مرګ نه دئ لیدلی البته مرګ ته په نژدې رسېدولو سره يې حیرانونکي او نابلده مناظر خود لیدلي دي. ددغو مشاهداتو لپاره چي دوئ کومه اصطلاح غوره کړې هغه (Near Death Experience) ده (مرګ ته نژدې تجربه) چي لنډيز يې N.D.E بلل کیږي او همدغه اصطلاح وروسته نورو لیکوالانو هم خپله کړې ده، نو له همدې کبله که ددغو خلکو د خولې بیانونه رښتیا وبلل سي... او د ډاکټر مودي پخه رایه دا ده ، چي دومره ډېر کسان په يوه ځل درواغجنان بلل دده لپاره اسانه کار نه دئ... بیا هم دا خبره ښکاره ده چي دې خلکو تر مرګ وروسته راتلونکي حالات نه دي لیدلي البته دا ویل کېدای سي چي د

بې هوښۍ په عالم کي به دوئ ته د هغه دنيا څه حالات د سترګو په رپ کي تر سترګو سوي وي ، چي د هغه دروازه مرګ دئ.

څرنګه چي ميډيکل ساينس يا طب صرف پر هغو شيانو باور او يقين لري ، چي په سترګو وليدل سي يا د نورو حواسو په واسطه محسوس کړل سي، نو ځکه تر اوسه پوري دوئ نه دي توانېدلي چي په انساني جسم کي د "روح" په نامه کوم شی معلوم کړئ او نه د "روح" حقيقت ته د دوئ رسېد نه کېدلای سي (او شايد د روح حقيقت دوی ته په ټول عمر معلوم نه سي، ځکه قرانکريم د روح په اړه د خلکو د پوښتني په جواب کي دا فرمايلي دي:

وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلرُّوحِ ۖ قُلِ ٱلرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّى وَمَآ أُوتِيتُم مِّنَ ٱلْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٨٥﴾ (سورت الاسراء)

(او دوئ ستا څخه د روح په اړه پوښتنه کوي، ورته ووايه چي " روح" زما د رب د حکم څخه دئ او تاسو ته يې ډېر لږ علم درکول سوئ دئ)

مګر د قران او سنت څخه دا خبره په پوره وضاحت سره څرګنديږي ، چي ژوند د جسم او روح د ټينګ تعلق نوم دئ او مرګ د دې تعلق د جلا کېدو نوم دئ.

په دې لړ کې دا نقطه د یادولو وړ ده ، چې مورږ د خپلو خبرو اترو په ترڅ کي چې د مرګ لپاره د "وفات" لفظ استعمالوو هغه د قرانکریم د یوه لفظ " توفی" څخه اخیستل سوئ دئ. د قرانکریم د نزول څخه مخکې په عربي ژبې کي د وفات لفظ د مرګ لپاره نه کارېده بلکي په عربي ژبه کي د مرګ د مفهوم د اداء کولو لپاره تقریباً څلرویشت لغاتونه استعمالېده مګر د دې معنی لپاره د "وفات" یا "توفی" د لغاتونو هیڅ وجود نه وو.

قرانکریم د لومړی ځل لپاره دا لفظ د مرګ لپاره استعمال کړئ او د دې وجه دا وه چې د جهالت د وخت عربو چې د مرګ لپاره کوم الفاظ وضع کړې وه هغه ټول د دوئ د دې عقیدې سره سم وه چې تر مرګ وروسته نور هیڅ ژوند نسته. قران مجید په ډېر ښایسته انداز سره د " توفی" یا وفات د لفظ په استعمالولو سره د دوئ دا غلطه عقیده رد کړه. د "توفی" معنی د یو شي په پوره ډول لاس ته راوړل دي او د مرګ لپاره د دې لفظ په استعمالولو کي و دې طرف ته اشاره ده سوې ده چې د مرګ په وخت کي د انسان روح د بدن څخه په را بېلېدو بیر ته (عالم ارواح ته) را بلل کیږي.

د دې حقيقت د روښانه کېدو لپاره الله ﷻ د قران مجيد په سورت زمر کي فرمايي: ﴿ٱللَّهُ يَتَوَفَّى ٱلۡأَنفُسَ حِينَ مَوۡتِهَا وَٱلَّتِي لَمۡ تَمُتۡ فِي مَنَامِهَاۖ فَيُمۡسِكُ ٱلَّتِي قَضَىٰ عَلَيۡهَا ٱلۡمَوۡتَ وَيُرۡسِلُ ٱلۡأُخۡرَىٰٓ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمًّىۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَٰتٖ لِّقَوۡمٖ يَتَفَكَّرُونَ ٤٢﴾ (سورت زمر)

ژباړه: الله تعالی (د انسانانو) د مرګ په وخت کي د هغو روحونه ور ځخه اخلي او کوم څوک چي نه مړه کيږي د دوئ ارواحونه (هم) د خوب په حالت کي (ورځني اخلي)، کله چي بيا د يو چا د مرګ فيصله او پرېکړه وسي نو د هغو ارواحونه دروي او د نورو روحونه تريو ټاکلي او معين وخت پوري پرېږدي. بېشکه په دې کي د هغو خلکو لپاره (ډيري د قدرت) نخښي دي چي فکر کوي.

په بل اړخ کي حضرت آدم ؑ ته د ژوند ورکولو لپاره قرانکريم په هغه کي د "روح پوکولو" سره تعبير کوي. د قرانکريم ددغو ارشاداتو ځخه دا خبره په ښکاره ډول معلوميږي، چي ژوند د بدن او روح د ټينګو اړيکو نوم دئ. د جسم سره چي د روح اړيکي او تعلق څومره ټينګ وي نو د ژوند آثار به په همغه اندازه ښکاره او واضح وي او د (جسم او روح) اړيکي چي هر څومره کمزوري کيږي نو په همغه اندازه د ژوند آثار او نخښي کميږي. د بيدارۍ او د ويښي په حالت کي د بدن او روح دا

تعلق ډېر زيات ټينګ وي، نو ځکه په دې حالت کي ژوند د خپلو ټولو نخښو او خواصو سره موجود وي. په دې حالت کي د انسان ټول حواس کار کوي، دده ټول غړي هر يو د خپل کار لپاره اماده او تيار وي، انسان خپل اختيار په پوره ډول استعمالوي او دده په فکر کولو او پوهېدولو کي هيڅ خنډ شتون نه لري مګر د خوب په حالت کي د بدن سره د روح تعلق يو څه کمزوری کيږي چي نتيجه يې همدا وي چي د بيدېدو په حالت کي پر انسان د ژوند ټولي نخښي او علامې نه ښکاره کيږي او هغه د خپل شا او خوا څخه ناخبره وي. د خوب په حالت کي انسان خپل د بدن غړي په خپل اختيار سره نه سي استعمالولای، نه په دې وخت کي د ويښي په څېر د فکر کولو او پوهېدولو صلاحيت لري، مګر بيا هم په دې حالت کي د روح اړيکي د بدن سره دومره ټينګي وي ، چي دده پر بدن باندي د واردېدونکو پيښو احساس پکښي پاته وي. مثلاً : که يو څوک په دې حالت کي د ده پر بدن ستن جګه کړي نو په دې تکليف سمدستي خبريږي او بيداره کيږي.

تر خوب لا هم مخته يو بل کيفيت د بې هوښۍ دئ. په دې حالت کي د بدن سره د روح اړيکي نسبت خوب ته هم زياتي کمزوري کيږي. همدا وجه ده چي د پوره بې هوښۍ په حالت کي که چيري د انسان د بدن غړي ځيري کړل سي نو بيا هم دئ تکليف نه محسوسوي او د بې هوښۍ د

همدې صفت څخه په استفاده سره ددې حالت څخه د لويو لويو عملياتونو لپاره کار اخيستل کيږي، په دې حالت کي د انسان د بدن څخه د ژوند ډيري نخښي او خاصيتونه ورکيږي البته د زړه حرکت او د ساه يا تنفس تګ او راتګ باقي پا ته وي ، چي په دې سره چا ته دا معلوميږي چي هغه ژوندئ دئ.

تر بې هوښۍ لا هم ها خوا ته يو بل کيفيت او حالت سته ، چي ځينو خلکو ته د ډيري سختي مريضۍ په وخت کي وريپښيږي ، چي عموماً دې حالت ته "سکته" ويل کيږي، په دې حالت کي د ژوند ټولي ظاهري نخښي او علايم ختميږي او نه يوازي امي سړي ته بلکي ډاکټر ته لا هم په ظاهره د ده د ژوند څه درک نه معلوميږي. په سکته کي د زړه حرکت بنديږي، ساه يا تنفس ودريږي، دويني فشار يا (Blood Pressure) ورک سي، د بدن حرارت او ګرمي تقريباً ختم سي مګر د دماغ په يوه پټ او ګوښه ځای کي د ژوند د برېښنا او برق يو څه جريان لا باقي پا ته وي. همدا هغه حالت دئ چي ډاکټران د اخري موقع په ډول د تنفس يا د زړه د حرکت د بېرته فعاله کولو لپاره ځيني مصنوعي لاري چاري ازمايي. د ځينو خلکو لپاره دا طريقه کاميابه سي او مريض تر دې عملې وروسته خپل معمولي ژوند ته راګرځي او دده دنيا ته د بېرته راتګ څخه دا خبره ښکاره کيږي ، چي دئ لا تر اوسه پوري مړ سوئ نه و او دده روح په پوره

ډول د بدن څخه جلا سوې نه وه، دا د ژوند تر تولو کمزورې درجه ده ، چي په دې کي د روح تعلق د انسان د بدن سره ډېر لږ وي. بیا د روح اړیکي چي د بدن سره څومره کمزوري وي هغومره هغه روح د بدن د قید څخه ازاده وي.

د خوب په حالت کي د روح دا ازادي لږ وي، د بې هوښۍ په حالت کي تر دې ډېره وي او د سکتې په حالت کي د روح ازادي تر بې هوښۍ لا هم ډېره وي.

نو له همدې کبله د سکتې دا حالت چي په هغه کي د روح تعلق د بدن سره ډېر لږ پا ته وي او روح د بدن د قید څخه تر ډېره حده ازاد وي، په همدغه حالت کي که د انسان اِدراک د خپل روح د سفر سره شریک سي او ده ته د دې دنیا د مادي ژوند څخه ها خوا ته د هغه بل عالم او دنیا که کوم شی تر سترګو سي نو هیڅ د قیاس څخه لیري خبره نه ده.
او په تاریخ کي داسي پیښي تیري سوي دي چي د دې ډول خلکو د عالم برزخ ځیني مناظر تر سترګو سوي وي. د کومو خلکو بیانات چي ما مخکي د ډاکټر مودي په حواله نقل کړي دي که دا ومنل سي چي هغه بیانات د دروا غو او خطا ایستني څخه خالي دي نو د دوئ دا مشاهدات همدغه ډول کېدلای سي مګر په دې اړه څو خبري په ذهن کي لرل ډېر زیات ضروري دي:

۱: د کومو خلکو چي دا مناظر تر سترګو سوي دي هغوئ ته لا تر اوسه مرګ نه و راغلی نو له دې کبله کوم څه چي هغو ليدلي دي هغه خو کېدای سي د هغې دنيا د ځينو مناظرو څخه يو څه وي مګر دا تر مرګ وروسته راتلونکي واقعات نه دي.

۲: په کوم حالت کي چي هغو خلکو دا مناظر ليدلي دي هغه خو د ژوند يو حالت وو (دوئ ژوندي وه) او لږ تر لږه د دماغ په يوه ګوښه کي خو لا ژوند باقي و نو له دې کبله په دغو ليدلسوو شيانو کي د دماغ د تصرف امکان د قياس څخه ليري خبره نه ده.

۳: کومو خلکو چي دا مشاهدات بيان کړي دي هغوئ ټوله پر دې خبره متفق دي، چي د دغو مشاهداتو تفصيل دوئ په الفاظو سره نه سوای بيانولای خو بيا هم دوئ دغه کيفيات د څو محدودو الفاظو په مرسته بيان کړي دي.

حال دا چي دا خبره اوس هم د شک وړ ده چي د دې الفاظو په ذريعه د دې حالاتو په بيانولو کي دوئ تر کومي اندازې کامياب وو؟ همدارنګه کومي خبري په څو مره صحت سره د دوئ په ياد وې؟

ددغو وجوهاتو له کبله ددغو مشاهداتو پر ټولو خبرو خو باور نه سي کېدلای او نه دا خبري د مابعد الموت (تر مرګ وروسته پيښنو) لپاره د کومي عقيدې بنياد جوړېدلای سي. د ما بعد الموت په اړه چي څومره حقايق معلوم‌مولو ته زموږ ضرورت دئ هغه د الهي وحي د شک او شبهې څخه خالي او روښاني لاري څخه رسول الله ﷺ تر موږ پوري رارسولي دي او د هغو خبرو تصديق داسي بيانونو ته اړ او محتاج نه دئ مګر د قران او سنت د حقايقو څخه ددغو مشاهداتو د ځينو خبرو تائيد خامخا کيږي.

۱: مثلاً: د هغو ټولو څرګندونو څخه دومره اندازه په مشترک ډول د قران او حديث څخه بېله شک او تردد څخه ثابته ده چي ژوند يوائې تر دې دنيا پوري محدود نه دئ چي زموږ په شا او خوا کي ليدل کيږي بلکي د دې دنيا هغه بلي خوا ته يو بل عالم هم سته، چي موږ د مادي کشافتونو په قيد کي د اوسېدولو له امله د هغه د کيفياتو صحيح ادراک نه سو کولای.

۲: په هغه دنيا کي پيښېدونکي واقعات د وخت او ځای (زمان او مکان) د مشهورو پيمانو څخه ډېر لوړ دي کوم چي په دنيوي ژوند کي موږ ورسره عادي سوي يو. موږ په دې دنيا کي دا تصور نه سو کولای

چي د یوه کار د ترسره کولو لپاره چي کلونو کلونو ته ضرورت وي نو هغه کله په یوه لحظه کي کېدلای سي؟ مګر هلته ټول پېښېدونکي واقعات د وخت د دې قید څخه ازاد دي. په قرانکریم کي الله تعالی فرمايي:

وَإِنَّ يَوْمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ ﴿٤٧﴾ (سورت الحج)

ژباړه: او په رښتیا سره ستا د رب په نزد یوه ورځ ستاسو د شمېرولو له مخي د زرو کالو سره برابره ده.

دا عالم څه شي دئ؟ د دې غوښتني څه دي؟ او و دې ته د رسېدو لپاره و څه ډول تیاریو ته ضرورت دئ؟ د همدغو پوښتنو د جوابولو لپاره انبیاء علیهم السلام تشریف راوړي ځکه چي دا خبري یوائحي موږ د خپلو حواسو او عقل د لاري نه سو معلومولای. په آخر زمان کي د دغو پوښتنو پوره جواب و موږ ته نبي کریم ﷺ د " اسلامي شریعت" په ذریعه راښوولي دي او هر څوک چي غواړي د دې عالم (اخرت) لپاره پوره تیاری ونیسي هغه دي دا شریعت زده کړي. ده ته به د دې عالم حقایق هم ښکاره سي او هلته د رسېدو لپاره به یې صحیح طریقه هم زده سي.

ﭘﺎﻱ

## استفتاء

ددې مسئلې په اړه ديني عالمان څه فتوا ورکوي ، چې د ۱۹۹۸ مېلادي کال، د لومړۍ مياشتې پر ۲۸ نېټه د روزنامۀ جنگ کراچي په اخبار کي، د چهار شنبې په ورځ په "ناقابل فراموش" ستون کي ډاکټر سيد امجد علي صاحب خپله يوه واقعه ليکلې ده. هغه واقعه په دې ډول وه چې پر ده د ۱۹۸۴-۳-۲۳ نېټه د زړه حمله راغله، نوموړی خپل د زړه د حملې اوږده قصه په تفصيل سره بيانوي او وايي چې زه د ۲۰ دقيقو لپاره مړ وم او تر دې وروسته زه مړ وبلل سوم.

تر مړني مخکي ما د نور څخه جوړ سوی يو څوک وليدئ چي و ما ته نژدې کيدئ ، چي د هغه جسم ته په نژدې کېدو سره زما د بدن روح په ډېره تېزۍ سره د پښو څخه پيل او د سر له خوا ووتی او زه د پوره رڼا يو کم وزنه فرد وګرځېدم. زه ددې نوراني سړي په ملګرتيا کي ډېر په راحت وم، زه د ټولو وارډونه او بيا د سختو مريضانو د ساتني وارډ ته ورغلم او هلته په يوه کونج کي ودرېدم. دا ټول د سترګو په رپ کي وسول، زه د نوراني سړي سره د خپل اصلي بدن و جسم ته نژدې وم او کتل مي چي زما د جسم او بدن سره څه کيږي.

زما و راسته اړخ ته د نور يو سور شپول يو په يو جوړه سوی و، ما د ارامۍ په حالت کي د سوپ ددې شپول د روښنايی څخه خوند اخيستئ

لکه ما چي خپل ځان د بلي دنيا فرد ګڼئ. زما پر جسم چي کوم طبي عمليات شروع وه د هغه څخه بې تعلقه وم. د روغتون د مختلفو برخو څخه ډيري زوروري ځپې پورته رواني وې، ما ته وويل سول چي دا د خلکو دعا ګاني دي. کله چي ما ته د ها خوا څخه دا پيغام راکول سو چي ته بېرته تلونکی يې (ځکه ستا ژوند لا پا ته دئ) نو ما ته يې ښه خوند را نه کړئ مګر بېله دې چاره هم نه وه. زه په هوا کي پورته وم او د همدې لاري خپل بدن ته په پوره ډول داخل کړل سوم او داسي مي احساس کړل چي په تېر وخت کي هم ما دغه وزن وړی او په راتلونکي کي به هم تر يو ټاکلي وخته دغه بار کشوم. بيا چي کله زما ستر ګي خلاصي سوې نو زه بېرته دنيا ته راوستل سوی وم. اوس پوښتنه دا ده چي علماء کرام د لاندي مسائلو په اړه څه فرمايي:

۱: ايا يو شخص تر ۲۰ دقيقو مړ کېدولو وروسته بيا را ژوندئ کېدای سي؟

۲: ايا دا ممکنه ده چي يو مړ کېدونکی انسان د يوه نوراني شخص سره و ګرځي؟

۳: ايا د يوه مړ کېدونکی روح هغه ټول شيان ليدلای سي کوم چي هلته ترسره کيږي؟

مستفتي (پوښتونکی): حافظ نور محمد

## الجواب حامداً ومصلياً

ذکر سوي شخص چي کوم مناظر او واقعات ليدلي دي هغه تر مرګ وروسته راتلونکي واقعات نه دي ځکه که مرګ ورته راغلی وای نو دئ به دوهم ځل و دنيا ته نه راتلای البته دا ويل کېدای سي چي د سکتې په حالت کي د خپل ځان څخه د ناخبرۍ په عالم کي مرګ ته په نژدې رسېدو سره د هغې دنيا ځني څه يې د لنډ وخت لپاره د سترګو په رپ کي تر سترګو سي.

ددې خبري تفصيل څه په دې ډول دئ چي ژوند د بدن او روح د ټينګو اړيکو نوم دئ. د جسم سره چي د روح اړيکي او تعلق څومره ټينګ وي په همغه اندازه به د ژوند آثار ښکاره او واضح وي او د (جسم او روح) دا اړيکي چي هر څومره کمزوري کيږي، نو په همغه اندازه د ژوند آثار او نخښې کميږي. د بيدارۍ او د ويښي په حالت کي د بدن او روح دا تعلق ډېر زيات ټينګ وي، نو ځکه په دې حالت کي ژوند د خپلو ټولو نخښو او خواصو سره موجود وي.

په دې حالت کي د انسان ټول حواس کار کوي، دده ټول غړي هر يو د خپل کار لپاره اماده او تيار وي، انسان خپل اختيار په پوره ډول استعمالوي او دده په فکر کولو او پوهيدولو کي هيڅ خنډ نه وي پروت

مګر د خوب په حالت کې د بدن سره د روح تعلق يو څه کمزوری کيږي ، چې نتيجه يې همدا وي چې د بيدېدو په حالت کې پر انسان باندې د ژوند ټولې نخښې او علامې نه ښکاره کيږي، هغه د خپل شا او خوا څخه ناخبره وي.

د خوب په حالت کې انسان خپل د بدن غړي په خپل اختيار سره نه سي استعمالولای، نه په دې وخت کې د ويښې او بيدارۍ په څېر د فکر کولو او پوهېدولو صلاحيت لري، مګر بيا هم په دې حالت کې د روح اړيکې د بدن سره دومره ټينګې وي چې دده پر بدن باندې د واردېدونکو پيښو احساس پکښې پاته وي. مثلاً : که يو څوک په دې حالت کې د ده پر بدن ستن جګه کړي نو په دې تکليف سمدستي خبريږي او بيداره کيږي.

تر خوب لا هم مخته يو بل کيفيت د بې هوښۍ دئ. په دې حالت کې د بدن سره د روح اړيکې نسبت خوب ته هم زياتې کمزورې کيږي. همدا وجه ده چې د پوره بې هوښۍ په حالت کې که چيرې د انسان د بدن غړي لا هم څيرې کړل سي نو بيا هم دئ تکليف نه محسوسوي او د بې هوښۍ د همدې صفت څخه په استفاده کولو سره د لويو لويو عملياتونو لپاره کار اخيستل کيږي.

په دې حالت کې د انسان د بدن څخه د ژوند ډيري نخښې او خاصيتونه ورکيږي البته د زړه حرکت او د ساه يا تنفس تګ او راتګ باقي پاته وي ، چې په دې سره چا ته دا معلوميږي چې هغه ژوندئ دئ.

تر بې هوښۍ لا هم ها خوا ته يو بل کيفيت او حالت سته ، چې ځينو خلکو ته د ډيري سختې مريضۍ په وخت کې ورپيښيږي ، چې عموماً دې حالت ته "سکته" ويل کيږي. په دې حالت کې د ژوند ټوله ظاهري نخښې او علايم ختميږي او نه يوازې امې سړي ته بلکې ډاکټر ته لا هم په ظاهره د ده د ژوند څه درک نه معلوميږي. په سکته کې د زړه حرکت بنديږي، ساه يا تنفس ودريږي، د وينې فشار يا (Blood Pressure) ورک سي، د بدن حرارت او ګرمي تقريباً ختم سي مګر د دماغ په يوه پټ او ګوښه ځای کې د ژوند د برېښنا او برق يو څه جريان لا باقي پاته وي. همدا هغه حالت دئ چې ډاکټران پکښې د اخري موقع په ډول د تنفس يا د زړه د حرکت د بېرته فعاله کولو لپاره ځيني مصنوعي لارې چارې ازمايي. د ځينو خلکو لپاره دا طريقه کاميابه سي او مريض تر دې عملې وروسته خپل معمولي ژوند ته بېرته راګرځي او دده دنيا ته د بېرته راتګ څخه دا خبره ښکاره کيږي ، چې د ی لا تر اوسه پوري مړ سوی نه و او دده روح په پوره ډول د بدن څخه جلا سوې نه وه، دا د ژوند تر ټولو کمزورې درجه ده ، چې په دې کې د روح تعلق د انسان د بدن سره ډېر لږ وي.

بيا د روح اړيکي چي د بدن سره څومره کمزوري کيږي هغومره هغه روح د بدن د قيد څخه ازاده وي. د خوب په حالت کي د روح دا ازادي لږ وي، د بې هوښۍ په حالت کي تر دې ډېره وي او د سکتې په حالت کي د روح ازادي تر دا لا هم زياته وي.

نو له همدې کبله د سکتې دا حالت چي په هغه کي د روح تعلق د بدن سره ډېره لږ پا ته وي او روح د بدن د قيد څخه تر ډېره حده ازاده وي، په همدغه حالت کي که د انسان اِدراک د خپل روح د سفر سره شريک سي او ده ته د دې دنيا د مادي ژوند څخه ها خوا ته د هغه بل عالم که کوم شی تر سترګو سي نو هيڅ د قياس څخه ليري خبره نه ده.

او په تاريخ کي داسي پيښې تيري سوي دي ، چي دا ډول خلکو د عالم برزخ ځني مناظر تر سترګو سوي وي مګر د دې مسئلې په اړه څو خبري په ذهن کي لرل ډېر زيات ضروري دي:

۱: ذکر سوي شخص او دې ته ورته د نورو خلکو چي دا مناظر تر سترګو سوي دي هغوئ ته لا تر اوسه مرګ نه و راغلی نو له دې کبله کوم څه چي هغو ليدلي دي هغه خو کېدای سي د هغې دنيا د ځينو شيانو څخه يو څه وي مګر دا تر مرګ وروسته راتلونکي واقعات نه دي.

۲: په کوم حالت کې چې هغو خلکو دا مناظر ليدلي دي هغه خو د ژوند يو حالت و (دوئ ژوندي وه) او لږ ترلږه د دماغ په يوه ګوښه کې خو لا ژوند باقي و نو له دې کبله په دغو ليدلسوو شيانو کې د دماغ د تصرف امکان د قياس څخه ليري خبره نه ده.

**(ماخذ: "ذکر و فکر" د شيخ الاسلام مولانا مفتي محمد تقي عثماني صاحب د مضمون "دنيا کې اوس پار" څخه)**

الجواب صحيح
احقر محمود اشرف عفا الله عنه
۱۴۱۹\۵\۲۴ ھ

والله سبحانه وتعالى اعلم
محمد يعقوب عفا الله عنه
دارالافتاء دارالعلوم کراچي شمېره ۱۴
۱۴۱۹\۵\۲۴ ھ